# کتاب پېژندنه

د کتاب نوم: لا هم څار مه ستا لارې
وېناوال: علم ګل سحر
کمپوز او ډيزاين: ګل محمد اريوبي
خپرونکی: د ختيځو سيمو د ليکوالو او
ژورنالستانو ټولنه
د پښتي طرحه:

# ډالۍ

زموږ د زمانې لوی انسان د افغانستان لوی ليکوال او شاعر غزلستوري استاد محمد صديق پسرلي صاحب ته

# لا هم څارمه ستا لارې !

شعر هم د خپل شاعر له ژونداو د وخت له حالاتوسره سم یون کوي، پخیږي، سکالو او انځورونه یې بدلیږي اود شاعر له پړاوونو سره سم پړاو وهي. که څه هم مینه داسې یوه سکالو ده ، چې د اکثرو شاعرانو لپاره نه زړیږي او له وروستۍ سلګۍ سره هم د مینې غزلې وایي، خو ګورو چې کله یې بیان ژبه ، کله یې د احساساتو انځورونه او کله یې هم د مینې سکالو بدلیږي، له زلفو او رخسار څخه وطن ته اوړي ،کله د دواړو له ښښتن ( انسان) سره په مجرده مانا او کله هم بیا د درې واړو هستوونکي او پنځوونکي ته ځانګړې شي.

زه یوه ورکه ښکلا
کله په ځان کې ګورم
له ځانه ووزمه ژر
ښکلا جانان کې ګورم
هیڅ مې تسل ونه شي
په ټول جهان کې ګورم

او یاهم په (کمال )کې دا ښکلی فکر وګورۍ:

د انسان زړه ته دې لار نه کړه پیدا

په آسمان لاره او ښتل څه معنا

د ځينو شاعرانو په شعر کې فکري يون او د ځينو شاعرانو په شعر کې بيا د زمانې يون ډېر پياوړی وي. د خوشال بابا په شاعرۍ کې فکر او زمانه دواړه څنګ په څنګ روان وي. د پښتو ژبې د پياوړي شاعر عبدالباري جهاني په شاعرۍ کې هم د همداسې پړاوونو غوره بېلګې ليدلای شو، که موږ د جهاني صيب شاعرۍ ته وګورو نو په لومړۍ ټولګه کې يې زيات د جهاد ، مقاومت او مبړانې جذبې څپې وهي، دويمه ټولګه يې زياتره دهيلو او امېدونو وړانګې شيندي ، په دربيمه کې ببرته ناهيلي څپې وهي او په همدې ترتيب وړاندې.
زما په اند د سحر صيب په شعرونو کې هم د فکراو ژوند د يون او بدلون همداسې نښې ليدلای شو. د شعرونو په دې ټولګه ( لا هم څارمه ستا لارې ) کې لا هم مينه د زياترو شعرونو اساسي سکالو ده، خو داسې ښکاري چې عقل پر احساساتو غلبه کړې اوداحساساتو پر ځای عقل پر زړه باندې حکم چلوي.

پخواهر څه را نه هير و ، ته مې ياد وې
اوس مې ژوند ته هم ور پام دی،
ژوند کومه

اويا هم دا بيت وګورۍ:

اوس هم له هغې کوڅې تیریږم
خو اوس ځمکې ته ګورمه او لوېږم نه

وایي، چې مینه رنده وي او چې څومره رنده وي هومره یې زور ډېر وي ، خو چې څومره بینا کیږي هومره محتاطه کیږي او هومره سنجیده کیږي.

اوس مې هنر د هیرولو زده دی
اوس د احساس په خوښه نه ځم چیرته !!!

د سحر صیب په اوسنیو شعرونو کې نه یوازې له ښکلا سره ، له زلفو او له رخسار سره په مینه کې سنجیده ګي او تعقل ښکاري ، بلکې د وطن په مینه کې هم د پخوالي ، فکر او تجربې روښانه څرک لګیږي او زما په اند همدا سنجیده مینه کولی شي وطن له اوسنیو اورونو او دردونو څخه وژغوري . زما په اند که چېرې افغان ولس همداسې پخوالي او سنجیده ګۍ ته ورسیږي او د خپلې هرې قربانۍ پر وړاندې یې د ثمرې غم هم وخوري نو بویه چې دا هېواد او ولس به نور د رښتیني سرلوړۍ پر لوري ګام اخلي . له بده مرغه موږ له وطن سره هم رنده مینه کوو او له همدې امله تل قربانۍ ورکوو خو نه مو ځان ته ګټه رسیږي او نه مو هم وطن ته، ځکه چې زموږ مینه د تعقل پر ځای یوازې پر احساساتو بنا وي. د ( ازادۍ څلی) په شعر کې د افغانانو رندو احساساتو او غرور ته ډېره ښه نغوته شوې.

هر يو غاصب راشي زموږ وطن ته
زموږ سرونو څخه جوړ کړي ځلي
کلي ښارونه مو ويجاړ کړي راته
سيلاب وي موږ ورسره يو سي خلي
* * *
خپله مدعا چې سرته ورسوي
د خپل وطن په لوري دوی روان شي
موږ وايو دادی بل قدرت مو مات کړ
اوس به مو بيرته وران وطن آباد شي
* * *
بس يو دوه، درې ځلي نور هم آباد کړو
وطن مو هغسې ړنګ بنګ پاتې شي
غاصب په روغو پښو ووځي رانه
راته ميراث يې يو بل جنګ پاتې شي

او يا هم په دې شعر کې:

موږ په وينو ازادي ده تل اخيستې
موږ په خوشي شي بايللې ازادي ده
،
زموږ برخه بې علمي ، لوږه اوتنده
موږه نوروته ګټلې ازادي ده
موږ به څه دازادي په قدر پوه شو
موږه کله لا ليدلې ازادي ده

سحر صیب د خپل قام له خوب او غفلته ډېر ښه واقف دی،
او د غلامۍ په راز یې هم خبر شوی. او له همدې امله دی
هم د خوشال بابا په څېر په غوسه کیږي او وایي، چې:

که ویده وای زما په چیغو به راویښ و
یا دي مړه یا یې په خوب ځان اړولی

او یا هم دغه بیت:

وخت نو څه ارزښت لري ، په ټوکو به یې تیر کړمه
زه د هر پښتون غوندې بیکاره عادت شوی یم

غواړم تاسو ته یو بل راز هم افشا کړم ، او هغه دا چې سحر
صیب اوس خپله ټوله مینه یوازې په شاعرانه احساساتو
کې نه ختموي ، بلکې د یوه ژمن خو سنجیده مین په توګه
زړه خوري ، ځوریږي او د دې هېواد د هر انسان پر وړاندې
د مسوولیت احساس کوي او د پښتون قام د ویښتیا لپاره
په ځانګړې توګه د ماشومانو او مېرمنو لپاره، چې تر
نورو ډېر اړ او تر نورو ډېر حقدار دي، منډې وهي او د
مرستې لاس یې تل ورغځېدلی وي.

البته زما پورتنۍ خبرې په دې مانا نه دي ، چې د سحر
صیب شعر اوس یوازې د وعظ، احتیاط او ځانساتنې
خبرې کوي، او یا یې هنر ټول د فکر قرباني کړی، بلکې په

دې ټولګه کې تاسې د مينې او ښکلا ډېر ښکلي رازونه ، نازک خيالونه او تنکي فکرونه ليدلای شیٴ:

په ويدو سترګو دې زمازړه لکه خوب وړی دی
اوس مې د ما ت زړه د ژغور لو هيله هم نه لرم
،
سپوږمۍ ښه ده تللی يار مې را په ياد کړي
پوی زما په خوی ته لمره ياره نه يې
هر سحر يې د مو بايل پيغا م را شي
چير ته ورک يې ته سحره ياره نه يې،
دا يې نو د مينې ننښه نه ده څه؟
مخ وا ړوي بل خوا چې ما ويني،
يا:
زه په ستورو پسې ولاړم
چې اميل دې کړم پرې ښکلی
څو مره ډير ستوري مې راوړل
خو چې راغلم ته بيا نه وې !

په دې ټولګه کې تاسو د غزل، ازاد شعر او ټپوډ ېرې ښکلي بېلګې لوستلای شیٴ، نو له همدې امله دا هم تاسو او دا هم د سحر صيب ښکلې شاعري !

په درنښت
خوشال روهي

# غزل

څو مره چې زه درته نږدې وم تا ونه پیژندم
یو عمر زړه کې او سیدې تا لا ونه پیژندم
زه څوک وم؟څنګه وم ؟له کومه راغلم چیرته تلمه
زه وم یو خوب که نور ویده وو ، چا ونه پیژندم
چې ما به نه غوښتل نږدې و راته پیژندم یې
چې زړه مې غوښتل هغو کله بیا ونه پیژندم
زه یم،هغه یم چې تا ستورو پسې ولیږلم
وی ، مخ یې وا ړاوو مغروري با ونه پیژندم
ما ویل ته به راشې ما سره به ما وژاړې
راغلې او ودې خندل ولاړې تا ونه پیژندم
۱۳۸۲ / ۲ /۱
کابل–ازادي راډیو

# ګل او اغزی

یو څو کلونه مې د ژوند له کلو بیرته باسم
ژوند کې یې نه شمیرمه
زه مې د ژوند کلیز له سره کا ږم
دا څو کلونه مې پخپل عمر کې نه شمیرمه
پوهیږې کوم کلونه؟
هغه کلونه چې له تا سره مې مینه وکړه
هغه کلونه چې مې عقل را نه تا وړی و
هغه کلونه چې مې ذهن کې یوازې ته وې
هغه کلونه ستا د عمر په کلو زیاتوم
دا څو کلونه مې د ژوند له کلو بیرته باسم
ژوند کې یې نه شمیرمه
په دې امید چې را نه هیره شې ته
په دې امید چې بیا دې یاده نه کړم

رښتیا:
که دا کلونه مې د ژوند له کلو بیل کړم
را نه هیره به شې؟
نه نه تا هیره ولای نه شم
ته مې په ختہ کې یې
را ځه له بلې دې خبره کړمه
زما کوټه کې د کړکۍ خوا کې د لمر رڼا ته
هغه خاورین ګلدان کې ګل،

## درته یادیږي که نه

چې ته به نه وې ،
زه بې خوا ته ناست وم
چې ته به رانغلې نو مړاوی به شو
اوس چې ته نه راځې همیش تازه وي
پوهیږې تیره ورځ مې څه وکول
دهغه ګل تر څنګ مې وکاره د ځوځو بوټی
ستا به باور و نه شي
سهار چې پا څیدم له خوبه څخه
ګل او اغزی په یوه بوټي کې و
زه ورته ګورم ته مې یادیې
ته مې نه هیریږې
نو:
که هغه څو کاله مې وباسم
دژوند له کلو
بیا به مې هم ته چیرته هیره نه شې
زما په ذهن کې دمینې او کینې جګړه ده
زما په ذهن کې اغزي او ګلا ن
دواړه اوسي.

۱۳۸۵\۱۱\۲۴
ازادي رادیو

## ياد

اوس ايله بيله له ځان سره بلد شوم
چې له تانه را جلا شومه په خود شوم
اوس د وخت په تيريدو باندې پوهيږم
اوس له وخته سره سم ځمه په لاره
پخوا هرڅه را نه هيرو ، ته مې ياد وې
اوس مې ژوند ته هم ور پام دی،
ژوند کومه
اوس مې ژبه د وختو نو ده زده کړې
اوس مې زړه کې ډيرې ښکلې اوسيدا ی شي
ته مې هم لاهيره نه يې،خپه نه شې
بس د نيمې شپې دخوب غوندې مې ياد يې
د حالاتو فيصلې هم عجيبه وي
دهيرشوي ما شومتوب غوندې مې ياد يې.
۱۳۸۵\۳\۱۱
ازادي راديو

## ستوري

زه په ستورو پسې ولاړم
چې اميل دې کړم پرې ښکلی
څو مره ډير ستوري مې راوړل
خو چې راغلم ته بيا نه وې !
۱۳۸۶\۵\۱۲
لمرتلويزيون

# غزل

ستا د ښکلا د خپلو لو هیله هم نه لرم
د خپلو سترګو د ساتلو هیله هم نه لرم

په ویدو سترګو دې زمازړه لکه خوب وړی دی
اوس مې د ما ت زړه د ژغور لو هیله هم نه لرم

چې ته رانه شې،تیارې راشي،نا امیده شمه
دبل څراغ د بلولو هیله هم نه لرم

که بې مقصده هر څوک زړه راوړي نو زړه ورکوم
داسې هم نه ده صرف د ښکلو هیله هم نه لرم

در تلای هم نه شم ،د ویلو جرات هم نه لرم
والله چې ستا دهیرولو هیله هم نه لرم

## کمال

دانسان زړه ته دې لار نه کړه پیدا
په آسمان لاره اوښتل څه معنا

# ورکه ښکلا

زه له خپل ځانه پردی
د ورکې لار لاروی
په یوه ورکه پسې
دی سرګردان مې زړګی
هیڅ مې موندلي نه دي
څه چې مې ذهن کې دي
زه یوه ورکه ښکلا
کله په ځان کې ګورم
له ځانه وزمه ژر
ښکلا جانان کې ګورم
هیڅ مې تسل ونه شي
په ټول جهان کې ګورم
یو څرک لیدلې ښکلا
یو نالیدلی درد دی
چې پرې دردمن د اسې یم
پر ځان مې شک پیدا شي
لکه مین د اسې یم

۱۲/ ۱۰/ ۱۳۸۷
کابل- وزیر اکبرخان مینه

# ژمی

لړګي مې ډير اخيستي
لاندی مې هم کړی دی
ځان او اولاد ته مې وړينې جامې ډيرې کړې
بخاری تل ګرمه وي
که ژوند و ، سږ ژمی به ګرم تير شي
سږ کال به يخ په مخه هم رانه شي
خو څه فايده ، چې د کور خواته مې يو بل انسان
له يخه ريږدي ! ! !

۱۳۸۷/۱۰/۱۴ کابل – څارندوی مينه

# هيله

سترګې دې ، دې خواته راواړوه لږ
لاره تياره ده ،
چې تيندک ونه خورم ،
ونه لويږم ! ! !

۱۳۸۷/۱۰/۱۲ کابل – نوی ښار
BBC دفتر

# د خپلواکۍ ځلي ته!

ته يې زموږ د عظمتونو ځلی
د سرشيندنو غيرتونو ځلی
زه په تا وياړم په تا فخر کوم
ته يې زموږه د وياړونو ځلی

* * *

ته د نيکونو د غيرت نښه يې
د افغانانو د عزت نښه يې
ځو مره په برم او په عظمت ولاړ يې
ته مو د واک ته د حريت نښه يې

* * *

ته چې اباد شوې ، زموږ د وياړ ځلی شوې
له هغې ورځې موږ هم ودريدو
لکه چې ته مو وروستنی هدف وې
بس موږ خپل لوی مقصد ته ورسيدو

* * *

ګوره خپه نه شې يوازې نه يې
دا موږ چې ګورې ، موږه ټول ځلي يو
دا دومره وخت موږه پر ځای ولاړ و
که لږ هم تللي يو په شا تللي يو

* * *

چې ته آباد شوې زموږ د وياړ لپاره
موږ له پخوا ځخه نور هم مغرور شوو
پخوا خو ښه و ، ګوزاره مو کيده
اوس چې مغرور شوو ، لانور هم مجبور شوو

* * *

نوره نړۍ ولاړه پخپله مخه

ځانته ته يې خپله يوه دنيا جوړه کړه

خو موږ ه تا غوندې ولاړ پاتې شوو

موږه تياره، نورو رڼا جوړه کړه

* * *

موږ چې تا ووينو نور هم مغرور شو

فکر کوو موږ آتلان يو رښتيا

اته اتيا کاله بس له تا راګرځو

موږه سکه وايو چې رښتيا روان يو

* * *

هريو غاصب راشي زموږ وطن ته

زموږ سرونو څخه جوړ کړي ځلي

کلي ښارونه مو ويجاړ کړي راته

سيلاب وي موږ ورسره يو سي خلي

* * *

خپله مدعا چې سرته ورسوي

د خپل وطن په لوري دوی روان شي

موږ وايو دادی بل قدرت مو مات کړ

اوس به مو بيرته وران وطن آباد شي

* * *

بس يو دوه، درې ځلي نور هم آباد کړو

وطن مو هغسې رنګ بنګ پاتې شي

غاصب په روغو پښو ووځي رانه

راته ميراث يې يو بل جنګ پاتې شي

## وسواس

د کور کلیانې رانه ورکې شولې
ډېر پسې وګرځېدم
خپل ټول جیبونه مې له سره بیرته وپلټل
پر هغه لاره بیرته درغلمه
دا ځل مې ستا پر ځای کلي ښارلې
کلي ترې تمې شوې
د مني يخه شپه مې تيره کړه،
د لارې پر سر
دا هم ټول ستا له لاسه
چې وعده ځای پورې درتلم،
کور رانه هیرو،
ځان مې هیرو،
ته مې ذهن کې وې
ته مې هم ونه لیدې ! ! !

۱۳۸۷/۱۰/۱
کابل-ښارندوی مینه

## دوه زړی

چا ډېره لاس کې راکړه
نه پوهيږم
د رقيب په خوا يې وولم
که پرې زړه مې ديار مات کړم؟

۱۰ / ۲ / ۱۳۸۲

وزير اکبرخان مينه

## زه او ته

زه لا وړوکی ومه
او ته لا نه وې پيدا
زه به همزولو سره
تاسې کوڅې ته راتلم
هر مازديګر به انتظار وم تاته
له لوبو وروسته به همزولي ولاړل
ما به ماښامه پورې
د ستورو لار څارله
ما ويل ته به راشې
سپوږمۍ به راغله
ته به نه وې هلته
ما ته ليدلې نه وې
خو ستا په شان چاته وم سترګې په لار

ماته دالستو شپوکې،
خدای ستا په شان،
حسن ښودلی و، خو
مابه موندلی نه شو
نو ته پوهیږې چې زه؟
لا ډیر پخوا مین وم
ښکلې په تا مین وم!!!

## ازادي

موږ په خوله باندې ستایلې ازادي ده
بس له هرڅه راته ښکلې ازادي ده
موږ په وینو ازادي ده تل اخیستې
موږ په خوشي شي بایللې ازادي ده
یو دوه درې کسه مین په ازادي یو
دلته نور وایي چې ولې ازادي ده
موږ د خپلې ازادي آتل تکفیر کړ
نه په ځان مو لورولې ازادي ده
زموږ برخه بې علمي، لوږه او تنده
موږه نورو ته ګټلې ازادي ده
موږ به څه دازادي په قدر پوه شو
موږه کله لا لیدلې ازادي ده
۲۰ / ۵ / ۱۳۸۷ -

# اندیښنه

په ښکلو سترګو دې ویرېږمه ډیر
هسې زما اخلاص رنده نه کړي تا !!!
۱۳۸۲\۲\۱۴

# احتیاط

اوس هم له هغې کوڅې تیرېږم
خو اوس ځمکې ته ګورمه او لوېږم نه !!!

# انتظار

زه خو انتظار یم له مودو راسې
زړه کې یې که تیر شو مه ،نو را به شي !!!

# (...)

تا مې چې زړه مات کړ
په هغه ورځ مې
خدای شته له ځا ن سره ډیر څه وویل !!!
۱۳۸۲\۲\۱۰
لمر تلویزیون

# رڼا

خلک شي حیران چې رڼا ووینې
یو وار ترږمۍ کې برېښنا ووینې

ذهن یې د شپو طلسم نیولی دی
نه یې شي باور چې سبا ووینې

دلته خو رڼا رنګ له تیارو اخلي
خلک وار خطا شي چې دا ووینې

خود به نو په مینه خپل باور بایلي
څوک چې له خپل یاره جفا ووینې

دا یې نو د مینې نښه نه ده څه؟
مخ واړوي بل خوا چې ما ووینې

ورځ کې به یو شعر ډالۍ کوم درته
څوک دومره وزګار دي چې تا ووینې
دا سحر کینو کې محبت غواړي
ژر به دد ي جرم سزا ووینې

1387/3/27

کابل ـ پښتونستان واټ

# ؟

څه؟
څه دې وويل ؟
وامې نه وريدل
څنګه ؟ څنګه ؟
ميـــنه ؟
او ه
- ستر ګې دې ښکلې دي
مينه را سره لرې ؟
نه نه کوڼ نه يم
هسې دا خبره لږ څه...
ميــنـــه ؟
ام ام ام ممم
مينه را سره لرې ؟
مننه ، خو وووو ! ! !
۱۳۸۵/۱۰/۹

# دمینې پته

اوس مې هنر د هیرولو زده دی
اوس د احساس په خوښه نه ځم چیرته
اوس که په مخه باندې راغلې چیرته
درته به ښه وګورم
سترګې به ستا سترګو کې ډوبې کړمه
له ښکلو سترګو به دې وپوښتم ،
د مینې پته
که مې ونه موندله
زړه ته به وو وایم داهغه نه ده،
هیره یې کړه
ژر به دې هیره کړمه
او نور به شپې ستا په یاد نه رونوم
اوس مې هنر دهیرولو زده دی
اوس د احساس په خوښه نه ځم چیرته !!!
۱۳۸۷/۱۰/۳۰

# غزل

چې د ومره د ر نږدې وم ،ما ویل لمر به وي ستا لاس کې
په دې نو څه خبر وم چې خنجر به وي ستا لا س کې
په زړه کې مې اوس ناست یې، جنګ له تا سره مشکل دی
دا زړه به مې هم ستا وي ،دا ځیګر به وي ستا لاس کې
په بلې به مین ومه، بې مېنې خوژوند نه شي
ویریږمه په ټولو نجونو اثر به وي ستا لاس کې
په ځا ن باندې غلط وم، ډیر غره ومه، تیرو تی
په دې هم خبر نه وم چې زما سر به وي ستا لاس کې
دا زه چې مې د خپل زړه ټول داغونه له تا بولم
په زړونو جګ ولاړ اغزي اکثر به وي ستا لاس کې
یو وخت د ومره مغرور شي د پاچا سلام وانخلي
خو کله شي وړوکی بس سحر به وي ستا لاس کې
۱۳۸۲\۲\۷
لمر ټلویزیون

# پاچا

پاچا ور غوښتی یمه
زه د ماڼۍ په دروازه کې انتظار ولاړ یم
پاچا هم ستا غوندي دی ،
وخت نه لري
پاچا ویلي چې لږ وروسته ور شم
کټ مټ همداسې لکه ستا روح مې چې غواړي همیش
خو ته مې نه در غواړې
ځکه تر اوسه انتظار پا تې یم
پاچا عادل دی پاچا ډیر زړه سواند دی
پاچا د پوځ بمباري کې ټپي شوې نجلۍ
په ټنډه ښکل کړي،
ورسره وژاړي
پاچا دټولو په درد ښه پو هیږي
خو څه کولای نه شي
پاچا عادل دی پاچا ډیر زړه سواند دی
خو پاچا غواړي په ما ظلم وکړي
پاچا ویل نور دلته ما سره ماڼۍ کې اوسه
بس پاچا هي چلوه
پاچا لګیا دی یو په بل پسې خبرې کوي
او له ما نه پوښتي چې،
زه ورته وو ایم دا..
پاچا هي تخت مې په کار نه دی
ما دې له خپله یاره نه جلا کوینه

پاچا دلوی ظلم تکل کړی دی
غواړي له تا مې بیل کړي
خو پاچا کرم هم نه دی
هغه نو څه پوهیږي
چې پاچا هي زما دا ستا لیدل دي
پاچا لګیا دی یو په بل پسې خبرې کوي
په ما خولې را ماتې
ورته ویلای نه شم:
چې که د سر امن وي
یوه خبره کوم
که زه دا ستا ما نۍ ته را شم ،نو بیا
هره ورځ زه نو کله
د چا خوبوړې سترګې نه شم لیدای
پاچا لګیا دی یو په بل پسې خبرې کوي
په ما خو لې را ما تې
ورته ویلای نه شم
کټ مټ همدا سې
لکه تا ته
چې ویلای نه شم
در سره مینه لرم
در سره مینه لرم

کابل ، ارګ
۱۳۸۲\۵\۱۲

# غزل

ډیر مې لرې له نظره یاره نه یې
خیر که یاد مې په سندره یاره نه یې
زه که ځان نه شړل شوی یم پردیس یم
ته هم خپل زړه نه خبره یاره نه یې
زه دې غم خپلو شعرونو سره ژاړم
ته به څه کړې چې شا عره یا ره نه یې
سپوږمۍ ښه ده تللی یار مې را په یاد کړي
پوي زما په خوی ته لمره یاره نه یې
هر سحر یې د مو بایل پیغا م را شي
چیر ته ورک یې ته سحره یاره نه یې
۱۳۸۵\۳\۲۳
وزیر اکبر خان مینه

# زړه

زړه مې له ځا نه سره بېدم
چا ته یې نه ورکوم
ښا یې یو وخت کوم څوک پیدا شي
په قیمت یې پوه شي ، ! ! !
–

## ډبرليك

زما دقبر ډبرليک
څومره په غور ګورې
غوا ړې معلومه يې کړې
زما دمړيني نيټه
چاته معلومه نه وه
زما د مړيني نيټه
ځکه ليکلې نه ده
زه خو هغه ورځ مړ شوم
چې ته په مخه راغلې
را ته دې ونه کتل
او له بل چا سره دې ډيروخندل
۱۳۸۶\۶\۵
لمرتلويزيون

# مظاهره

پرون مې ذ هن کې افکا رو مظا هره کړ ې وه
چې و لې ما ستا په ستا يلو عجله کړې وه

ذ هن يې لوټ کړ ستا عکسو نو ته يې اور وا چاوو
نږدې يې زما په لا شعور با ندې حمله کړې وه

اوس لږ پو هيږ مه چې ما هم اشتباه کړې وه
ما په شعرونو کې رښتيا مبا لغه کړې وه

په هغه ځمکه تر سهاره چې اورونه بل وو
هلته مې روح هسې ستا حسن ته سجده کړې وه

بيګا مې خوب ليـده مړ شـوی ومه
بيګا مې ستا نا مه د خپل قبر لوحه کړې وه

مخا مخ ښه و ، پسې شا به يې خبر ې کړلې
ما له دې ځينو سره څو مره حو صله کړې وه

زيا تې ترې ځمه خو تر اوسه پورې پوه نه يمه
ما له دې خلکو سره څه وړ ګو زا ره کړې وه

۱۳۸۵\۳\۱۳
ازادي راډيو

# غمیزه

چې زړه مې نه غواړي
نږدې راشي
تر څنګ مې کيني
خو هغه چاپسې ،
چې زړه مې چوي
رانه ډېر لېرې ولاړ شي
تښتي رانه !!!

۱۳۸۲/۲/۴

لمر ټلویزیون

# نهیلي

راځه کینه د شعرونو ویل پریږده
دا ویده قام هیڅوک نه شي ویښولی
ستا ځواني مې نه لوریږي ګرانه کینه
په دې لاره کې دی ډیرو سر خوړلی
د دوی دوست دی چې یې دوی دي ټول وژلي
دغه قوم همیشه مغل ستا یلی
د خوشحال بابا خبرې در په زړه کړه
دغه قوم همیشه خپل ورور وژلی
چې د دوی د رهبري تکل یې کړی
دغو خلکو یې اول سر دی وهلی
دوی خوشحال دي چې جرس یې ولجه کړی
او ښ یې بار سره له کوره بیرته تللی
که ویده وای زما په چیغو به راویښ و
یا دي مړه یا یې په خوب ځان اړولی !!!

۱۳۸۷ / ۷ / ۵

څارندوی مینه

# غزل

زه در نه بیل شوم خو خبرو یاره پرې نه ښودې
تا څه ویل خو چا تر خپله واره پرې نه ښودې
پرون مې ټولې پخپل لاس جانانه رنګې کړلې
دخپل پل نښې مې هم ستا په لاره پرې نه ښودې
ته لکه زه یوا زې خوښ وې خو قسمت ته ګوره
تر تا چاپیر شول، دې ګلونو خاره پرې نه ښودې
ما مې د اوښکو ملغلرې در لیږلې خو تا
زمونږ تر منځه تر اومړې تاره پرې نه ښودې
تا دټیکرې پیڅه کې ټولې خوښې غوټه یووړې
یوڅو شیبې دې هم زما لپاره پرې نه ښودې

۱۳۸۵\۱۳\۱۲
رشاد کره کتنه - کابل

# قرباني

ما مې له زړه سره د سترګو اختیار تا ته درکړ
بیا مې د چا په لوري ونه کتل
شونډو مې ستا د نامه ذکر کاوو
ما وې دې ښار کې بس یوازې ته یې
د چا مې نه اوریدل
د اوریدلو حس مې تا وړی و
ما د ارمان ګلونه ،
ټول ستا په لار وشیندل
تا مې د زړه پر سر چاړه تیره کړه
ما یې پروا ونه کړه
ځکه هغه مې اول ستا ګڼلو
ارمان مې تا ته قرباني کړ داسې
لکه سیرلی چې په اختر حلال کړي
خو چې صراط پله نه تیره شوې ته
بیا دې را و نه کتل
زه شوم لمبو ته پاتې
تورو تیارو ته پاتې
داور له کومي نه فریاد کومه
غواړم دا ستا له سترګو وپوښتم دا
که شونډې نه وي سترګې وو ایي دا :
قرباني دې ته ، مینه دې ته وا یـــي !!!

۱۳۸۴/۹/۲۵
کابل - درشاد کره کتنې غونډه

# غرور

ځو مره ساده ،
ځو مره په ځان مغرور وم
له خپل جانانه سره جنګ ته ولاړم
زه له خپل ځانه سره جنګ ته ولاړم
زه په پښتو ، توره او سپر نازيدم
ما به ويل
که توره ماته شي سپر کار ورنه کړي
زما پښتو ماته قوت راکوي
خو زه خبر نه ومه
د هغې سترګو کې دا درې واړه وو ! ! !
۱۳۸۷ / ۵ / ۲۳
کابل – لمر تلويزيون

# مينه

یوه پیغله چې بې حده ښایسته وه
له سیند ها خوا د ځنګله منځ کې دیره وه
لوړه ونه زرغونې سترګې یې ښکلې
په لیدو یې ښاپیری در یادولې
خرمایي زلفې یې مخ باندې خورې وې
او نرۍ شونډې یې بې له رنګه سرې وې
ددې پیغلې هیڅ کمی د ښکلا نه و
خدای ورکړی یو له مینې نه ډک زړه و

یوه ورځ یو زلمی ښکار پسې وتلی
په راتلو راتلو تر سیند پورې و ،تللی
چې شو سترې دیو کور خواته دیره شو
د قسمت کار و ،ددې پیغلې میلمه شو

په لومړي لیدو یې زړه و ، پرې بایللی
د نجلۍ ښکلا اغیز و ، خپل شیندلی
نجلۍ هم شوله میینه پردې ځوان
د زلمي ښایست پردۍ کړه له خپل ځان
په رڼا مینځلې دې ښکلې نجلۍ
هم پردی کړ دا ښکاري له دې نړۍ
د نجلۍ مینې له ژونده لاس پر سر کړ
خپل له مینې ډک زړګی یې دې ته ور کړ

ځینې پاتې د دنیا کار و روزګار شو
بس مین شو نه د کور او نه د ښکار شو
ته به وایې له ازله پرې مین و
لوی مقصد یې هر ماښام د دې دیدن و
خو د دوی ترمنځ یو لوی سیند را روان و
تیر یدل ترې تیر له وسه د انسان و
خو د مینې په زور دا ځوان هر ماښام
تیریده له ستره سینده په ارام
د او بو زور د ده مینې ته ډیر کم و
معشوقه به یې لیده نو ریې څه غم و
د سیلاب منځ کې به تیر شو په اسانه
ده به هیڅکله پروا نه کړه د ځانه

یو ماښام یې د دې سترګو ته کتل
سم له واره یې نجلۍ نه و پوښتل:
- ستا په سترګو کې دا داغ شو بیا له کومه؟
دغه(خو ) ما ته هیڅ نه وه را معلومه
پیغلې وویل ځواب کې ورته داسې
نن احتیاط کوه چې ځې له ما نه هسې
نه چې یو سي نن او به تا د دریاب
ځوان حیران شو د نجلۍ پر دې ځواب
ترې یې بیا د داغ خبره و پوښتله
د نجلۍ وینا یې بیا بیزه ګڼله
پیغلې وې: دا ستا ځواب و ، د خبرې

ته د مینې له قانونه لاړې لیرې
ته چې هر مابنام له سینده تیریدلې
خپل قوت نه و ، زما مینې تیرولې
ستا په مینه کې کمی نه و ،تر اوسه
چې قوت دې له اوبو زیات یو په لسه
دغه داغ مې و ، په سترګو کې پخوا

ته مین وې، ورته پام نه و ، دا ستا

اوس چې مینه کې راغلی دې خلل دی
خدای دې خیر کړي،شک دې مینې سره مل دی
نن چې ته له دغه لوی سینده تیریږې

-

احتیاط کړه ګرانه ګرداب کې ونه لویږې
دغه ځوان چې له نجلۍ څخه روان شو
زړه نازړه دې خپلې ویرې ته حیران شو
سیک یې نه درلود په زړه کې دومره زیات
په لوی سیند باندې ورګډ شو په احتیاط
د لوی سیند تر نیمایي و ،رسیدلی
د اوبو څپو په غیږکې و ، نیولی
په لږ وخت کې د اوبو څپو کړ لاندې
لکه ماتې کړي باد لښتې تاندې تاندې

څه پر ځای د پښتنو دغه متل دی

ويل شوی هم تر دې پيښې اول دی
که له ياره سره مينه او ياري کړې
په اخلاص به ورسره د زړه دوستي کړې

هيڅ نظر يې مه لره ته په عيبو
ډير پخوا داسې ويلي پښتنو
۱۳۸۷/۱۰/۸

کابل – څارندوی مينه

---

پښتو متل:
له يار سره ياري لره
په عيبو يې نظر مه لره

# خو ته مې ونه لیدې

ستا مستانه خندا مې غوږ ته راغله
ښه ورته غوږ شوم ،
ماته بل ډول وه
ستا د پښو ښکالو مې هم واوریده
زما په لوري را روانه شولې
بیا دې زما لاس پخپل لاس کې ونیو
ظالمې ډیر دې ټینګ کړ
زه مې دلاس په درد ونه پوهیدم
څه خو دې ووې ،
ما هیڅ وانه وریدل
بیرته روانه شولې،
ولاړې رانه
ما سترګې و موښلې
خو ته مې ونه لیدې !!!

۹/ ۳/ ۱۳۸۵
وزیر اکبرخان مینه
ازادي راډیو

## ټپېزې

چې ته شې ولاړه غم مې ډېر سي
زلمیتوب دې تشویش کې تیر سي
دغه یو غم رانه چاپیر سي
عمر چې تیر سي اشنا هیر سي
ستا دې قسم وي چې ما هیر نه کړې مینه

* * *

پس له الله مې ستا ثنا کړه
ځواني مې مینه کې تالا کړه
یمه رنځور ته مې شفا کړه
اوس مې د عمر تاوان راکړه
نرۍ نرۍ خندا دې کړه رنځور دې کړمه

* * *

زما دې بیا تبه اوږده کړه
تا چې په بل دیار کې شپه کړه
ګلې بل واري داسې مه کړه
دیدن دې دومره فایده وکړه
لکه رنځور چې په لکړه پورته شینه

* * *

خدای پامانې سخته شیبه ده
د بدمرغیو دروازه ده
خوښي د ژوند یوه شیبه ده
دیدن د بادو پیمانه ده
نه به پرې مورې شې نه به وترې بارونه

*   *   *

خیال کې مجلس مې د اشنا که
مرور یار مې را پخلا که
د مینې لوی مقام خدای راکه
په اندیښنو مې ځان پاچا که
سر مې را پورته که، ملنګ د دنیا ومه

*   *   *

خوشحالي ولاړه، غم یې یار شي
د رنځو منځ کې را ایسار شي
بس د اغزو پر سر یې لار شي
چې پاک الله ورته په قار شي
نصیب یې خوار شي په ورکړې مین شینه

## درد

څو مره ډیر را سره خاندې
څو مره ډیرو سره خاندم
له سهاره تر ماښامه
له بې شمیرو سره خاندم
هسې ځان خوشحاله بولم
له ملګرو سره خاندم
ته به وایې هیڅ غم نشته
له خبرو سره خاندم
زما زړه کې چې کوم غم دی

چاته کله معلومیږي
دوی خو ټول را سره خاندې
زما په درد کله پوهیږي
نور مې ورته کیږی خندا نه
زړه مې تنګ دی له جهانه
چې په مخه مې را نه شې
نور مې بد ایسې جانانه
ما وې ته به زړه ته را شې
ما به ما سره وژاړې
چې په زړه کې دې ځای و موند
تا هم وخندل او ولاړې
۱۳۸۲/۷/۹
کابل - څارندوی مینه

# غزل

اوس په دې مالت کې زه بې یاره عادت شوی یم
یاره خپه نه شې ستا لپاره عادت شوی یم
دلته مې اوس یار نشته کلونه دي، اوښتي خو
هر ماښام راځمه په دې لاره عادت شوی یم
وګوره مه ښکلو ته ، بیا ژر جومات ته ولاړ شمه
زه له وړکتوبه ښه دیندار عادت شوی یم
پیتاوې ته به کینمه او سیوري ته به پریوزمه *
زه د هر پښتون غوندې بیکاره عادت شوی یم
راځې که نه راځې زه درته هم سترګې په لار نه یم
اوس نوله خزان سره بهاره عادت شوی یم

۱۳۸۷/۱۱/۱۷

کابل – پښتونستان واټ

---

- دغه بیت لومړی په دې بڼه و

وخت نو څه ارزښت لري ، په ټوکو به یې تیر کړمه
زه د هر پښتون غوندې بیکاره عادت شوی یم
خو کله چې مې استاد اسدالله غضنفر ته ولوست هغه یې
لومړی نیم بیتي داسې سم کړ:
پیتاوې ته به کینمه او سیوري ته به پریوزمه
زه د هر پښتون غوندې بیکاره عادت شوی یم

# درواغ

زه لکه نور خلک ،
دروغ وایم رښتیا نه وایم
وایم اوس مینه نه کړم
اوس د احساس په خوښه نه ځم چیرته
اوس رانه هیره یې ته
اوس دې هیڅ نه یادوم
هسې د خلکو له خبرو څخه ځان ساتمه
داټول دروغ دي
ته مې هیره نه یې
اوس هم خپل نوم سره ستا نوم لیکمه ! ! !
۲۲/ ۳/ ۲۰۰۹

هندوستان – ممبی
پریل – کمال بلډینګ

# بې هیلي

د پسرلي نرى باران اوريږي
مرغان خوشحاله دي، ټوپونه وهي
خو د قفس مرغۍ هیڅ نه ورګوري !
۲۸/ ۱/ ۱۳۸۸
کابل – پښتونستان واټ

## غرمه

د توت تر ونې لاندې يخ يخ شړومبی
او خوږ مجلس له څو يارانو سره
غرمه د اوړي، تر سپرلي هم ښه وي ! ! !
۱۲/ ۳/ ۲۰۰۹
هندوستان – نوی ډهلی

## نوم

شونډه دې ولې په غاښ ټينګه کړله
لکه چې ستا هم په ما خوا بدیږي
ما مې مړوند باندې ستا نوم ليکلو
هسې لړ وينې ولاړې
ليونۍ دا خو دومره درد نه کوي
ما په نازک زړه ،
تر دې سخت ،
ستا ښکلی نوم ليکلی ! ! !

دهیواد ځوان شاعر اولیکوال ګیلانوال د شعر په ځواب کې

# غمونه

غمونه زښته ډیر دي
اول نو کوم یو درته ووایمه
وطن مې اور کې سوځي
زړونو کې کرکې شنې دي
اوه ، هغه دی بیا یې مکتب وسوځاوو
زموږه خپلو خلکو
وایی مکتب کې درس د کفر وایي
اه هغه دی بیا توري چورلکې راغلې
هغه دی بیا له کلي دود پورته شو
بیا په واده باندې بمبارد شوی دی
بیا یوه ناوې د واده جامو کې ګور ته درومي
وایي چې بیا ځانمرګی برید شوی دی
یو بهرنی ټپي دی
زموږ پنځه ویشت شهیدان شول پکې
خلکو له سره شروع کړی ، جنګ د خپل ځان پرضد
زموږه خلکو بیا تصمیم نیولی
چې ترهغو دیوه بل خبره هیڅ وانه وري
څو یې لندن او واشنګټن دواړه نیولي نه وي !
مرګ هره ورځ ماته په مخه راځي
غمونه زښته ډیر دي

زه به نو کوم یو درته ووایمه
غمونه ډیردي
خو زه هم ورته یوازې نه یم
اوس ډیر ملګري لرم
مورې اراده د ژوند کولو لرو
مورې زړه کې مینه لرو
مورې غواړو وکړو په زړو کې مینه
مورږه له خپل وطنه کړکې باسو

# لا هم خارمه ستا لارې

نو اول دې ولې نه وېل*
چې زه هغه تصویر نه یم
چې دې تل و ، په خیالو کې
ستا دذهن په پردو کې
چې له ذهن نه دې ورک و
*
نو اول دې ولې نه وېل
چې زه هغه تعبیر نه یم
چې به و ، ستا په خیالو کې
چې یې روح و ، بندي کړی
د یو خیال په زولنو کې
*

نو اول دې ولې نه وېل
چې زه هغه کوکۍ نه یم
چې نیوه دې په لاسو کې
ستا د کلي په ډنډو کې
د شوتلو په لوو کې
د ګلانو په باغچو کې
*
نو اول دې ولې نه وېل
زه هغه ښاپیرۍ نه یم
چې لیده دې په نکلو کې
ماشومتوب په دنیاګۍ کې
درسره به وه په غرو کې
*
نو اول دې ولې نه وېل
چې زه هغه سپوږمۍ نه یم
چې لیده دې په اوبو کې
شمار دې ستورو به دې پرېښود
د سپوږمۍ په ننداړو کې
*
زه لا هغسې ماشوم یم
د خپل خوب تعبیر مې غواړم
چیرته خړو اوبو وړی
رانه ورک تصویر مې غواړم
اوس هم ستا لارې څارمه
وایم نن سبا به راشې

زما مینه به دې یاد شې
بیرته مینه به زما شې

*وړل د پکتیا ،پکتیکا ،غزني او لوګر ولایتونو په ځینو سیمو کې په یوه سیلاب(وې) تلفظ کیږي دلته هم په همدې یوه څپه راوړل شوی دی.

# غزل

ستا غنم رنګه څېره بل رنګ ښيي
هینداره هیڅکله رښتیا نه وايي
ټول بې معنا لګیا له ځانه ګډ دي
څوک مې ونه لید چې له تا نه وايي
څراغ يې لګي تر سهاره دلته
څوک ناروا ته ناروا نه وايي
څو زورور مو په سرو ولاړ دي
خو ورته هیڅ زموږ پاچا نه وايي

خلکو ترې جوړې څه خبرې کړلې
سحر دې نوم هم اوس په غلا نه وايي

۱۸ / ۷ /۱۳۸۷
کابل – څارندوی مینه

## ژوند

پوهیږم
پخپلې کوچنۍ لور مې زه هم همدومره ګران یم
لکه داچې پرما ګرانه ده
خوماښام چې کورته راشم
غیږې ته مې نه راځي
(ښکلا )ډېره هوښیاره ده
هغه پوهیږي
چې ژوند څومره بې وفا دی
شاید یوماښام زه هم کورته رانه شم ! ! !
۱۳۸۸/۱/۲۳
کابل-څارندوی مینه

---

## دیوال

زموږ ترمنځه
دزمان دیوال هسک شو
هغه یې سیوري ته کیناسته ! ! !

## یاد(۲)

دا څو کلونه مې يو مخ هيره وې
هيڅ مې په ياد هم نه وې
ځو مره چې ليرې رانه تللې وې ته
له ډيرو غرونو وطنونو ها خوا
څو مره چې ته ليرې وې
هومره دې ياد پردی شو
خو:
پرون مې بيا دوه سترګې وليدلې
اوس مې په زړه باندې نری درد ګډ دی ! ! !

## وخت

مادوخت ګريوان ته دواړه لاس وراچولي دي
ولې دومره ژر تير شو
زه لا پرې خبر نه وم ! ! !
۱۳۸۸/۱۱/۱۸
۲۰۱۰/۲/۵
اسلام آباد - پاکستان

# منی

دمني په سرہ شپه مې
ترسپيده چاوده په وترو اوبه ولګولې
دسهار خواته په پوله خوب يووړم
پرمخ مې ګرم لاس حس کړ
اه ما ويل دمور لاس دی
راويښ شوم
لمر راختلی و !!!

۱۳۸۱/۸/۱۷
پکتيا۔زرمت ،اسلام خيل

# تللی انځور

څومره نږدې و ،
څومره ليرې شوو له يوبل څخه
څومره پردی، شوې رانه
اوس مې دژوند له هرې برخې بيله شوې يې ته
اوس مې له خيال څخه ډير ليرې ستا انځور تللی دی
اوس له ګلونو څخه ستا پوښتنه نه کومه
اوس له بلبلو څخه هم کومه ګيله نه لرم
چې په سندرو کې دې نوم نه اخلي

اوس رانه ډیره لیرې شوې یې ته
اوس مې دژوند له هرې برخې بیله شوې یې ته !!!
۱۳۸۷/۲/۵

کابل – دوهمه ناحیه

## نالیدلې

ډیر وختونه کیږي،
چې لټوم یې
هغه مې لا نه ده لیدلې
دا څوک ده؟
چې زما خوبونه یې ورسره وړي دي
دا څوک ده؟
چې ما دځان په لوري ور بولي
هغه مې لا نه ده لیدلې
کله چې دهغې په څیر بله وینم
په زړه مې ګبنۍ ګډه شي
هغه مې لا نه ده لیدلې
خو سترګو یې،
زما زړه کلابند کړی دی
دا څوک ده؟
هغه مې لا نه ده لیدلې
کیدای شي هیڅ یې ونه وینم
زموږ ترمنځ دزمان دیوال ولاړ وي !!!
۱۳۸۲/۳/۲
کابل – خارندوی مینه

## دتخييل کوڅو کې

لفظونو دغزلو کې صنمه رانه پټه شي
زه پسې ستومانه دا بې غمه رانه پټه شي
زه دتخييل کوڅو کې سترۍ پسې ګرځمه
دا له غره را کوزه شي په سمه رانه پټه شي
وريځې دهجران په شنه آسمان کې راڅرګندې شي
ښکلې شي سپوږمۍ په څوارلسمه رانه پټه شي
انسان يمه ناقص يمه سوالونه شي پيدا راته
دخدای(ج) دقدرت هاخواته مريمه رانه پټه شي
فکر دباروتو دوږمو لارې کنډوې کړې
ښکلا دسرو غوټيو له شبنمه رانه پټه شي
دلته تورتمونه دي رڼا دسحر نه راځي
تورو شپو کې ورکه شي او شمه رانه پټه شي

۱۳۷۹/۴/۸

پکتيا ،زرمت ،اسلام خيل

دیوه شعر ته ورته لیک په ځواب کې چې لیکلي یې و:(په دې دنیا کې دمینې وړ څوک پاتې دي؟)

## مینه نه مري

ولې نه
لا ډیر کسان شته چې دمینې وړدي
لا خو ډیر څه شته چې موږ مینه ورکړو
مینه ژوندۍ ده لاهم
مینه هیڅکله نه مري
* * *
لا ډیرې سترګې دي له مینې ډکې
لا مینه ژوند کوي زموږ په زړو کې
ګیلاس لا نیم پاتې دی
لا انسانیت ژوندی دی
انسان دمینې نوم دی
لا زړونه شته چې کرکه نه پیژني
لا ډیر کسان شته چې دمینې وړدي
لا خو ډیر څه شته چې موږ مینه ورکړو
مینه ژوندۍ ده لاهم
مینه هیڅکله نه مري
* * *
تا دبې موره وري په سترګو کې لیدلي کله ؟

تا کومه ورځ ګل ته اوبه ورکړې؟
د بلبل اوښکې دې لیدلې کله؟
باران وهلې تو تکۍ ته دې پناه ورکړې؟
کتار د زانو دې لیدلی کله؟
دونې څانګې دې لمس کړې کله؟
د کوم بوډا لاس دې نیولی کله؟
تا له سوالګر سره خواله کړې دې؟

تا د دښمن سترګو ته سم کتلې؟
مینه هغلته هم شته
لا ډیر کسان شته چې د مینې وړ دي
لا خو ډیر څه شته چې موږ مینه ورکړو
مینه ژوندۍ ده لاهم
مینه هیڅکله نه مري
* * *
اغزي دې ورک شي ،
اغزي ډیر بدرنګ دي
چاته یې مه ورکوه
چیرې یو ګل پیدا کړه
په موسکو شونډو یې ډالۍ کړه چاته
مینه له مینې پیدا شوې هروخت
که نور نفرت کړي موږ به مینه کوو
زړه به هینداري غوندې پاک ساتو تل

کینې به نه ورپریږدو

لا ډیر کسان شته چې د مینې وړدي
لا خو ډیر څه شته چې موږ مینه ورکړو
مینه ژوندۍ ده لاهم
مینه هیڅکله نه مري
مینه هیڅکله نه مري

## غزل

اغزي ته شاکړي او سره ګل ته ګوري
هوښیار تیارې ته نه، لمرځل ته ګوري
مینه هغه چې سره یو وي زړونه
مینان نه دي چې یو بل ته ګوري
دا چې ځیر ګوري نوې میاشت نه ګوري
پر بام ولاړې پیغلې نجل ته ګوري
دا قام لګیا دی خپل حالت بدلوي
پښتون خونه دی چې ازل ته ګوري
دوی خو لا تیرو زمانو کې اوسي
اوس هم لا لارې د مغل ته ګوري
لاهم وخت شته چې ژوند د مینې وکړي
خو دوی یې نه غواړي اجل ته ګوري

دلته څوک لارې د مکتب نه څارې
چې څه به کیږي ټول مورچل ته ګوري
سحره نور د مینې شعر مه لیکه
خلک عمل ته نه، غزل ته ګوري

# خدای پاماني

دژوندون سخته شیبه خدای پاماني ده
دسره اور یوه لمبه خدای پاماني ده
یوناڅاپه یې دتللو شیبه راســـي
یوناڅاپه وایي ځه خدای پاماني ده
تګ دیار ،تګ داولاد ،تګ ددوستانو
په زړه ګډه کړي لړزه خدای پاماني ده
ټول ژوندون دساړه ژمي مازدیګر دی
او دژمي اوږده شپه خدای پاماني ده
ژوند یوخوب و ، څومره ژر تیر شو دنیا کې
بس څو ورځې وم میلمه خدای پاماني ده

دليکوال چاپ اثار:

۱- د سپوږمۍ ښکالو د شعرونو ټولګه ۱۳۷۰

۲- دلمر جنازه // // ۱۳۷۷

۳- مينه او وسواس دلنډو کيسو ټولګه ۱۳۸۴

۴- دپاريال خوبونه دشعرونو ټولګه ۱۳۸۱

۵-مينه او جګړه ناول ۱۳

۶-پاس سپوږمۍ، لاندې ته يې د شعرونو ټولګه ۱۳۸۵

۷- دمتلونو کيسې او نور معلومات ۱۳۸۷

۸- شيطان ځراغ دطنزيه کيسو ټولګه ۱۳۸۲

۹- ستوري دماشومانو لپاره شعرونه ۱۳۸۷

۱۰- دميني روغتون دنړۍ دمشهورو طنزونو ژباړه ۱۳۸۷

۱۱- خبرې له خبرو پيدا کيږي ۱۳۸۷

۱۲- بې ځايه غرور دماشومانو لپاره کيسې

۱۳- همدا اثر

ناچاپ اثار:

۱- دښاپيرۍ په لټه دلنډو کيسو ټولګه

۲- دکابل تراژيدي خاطرې او ورځني ياددښتونه

۳- خاموش فيليسوف دمقالو ټولګه -تدوين

۴-کاروانونه دبکوا په دښت تيريږي فولکوريک اثر

۵- دعرفان مجلې تاريخچه او نيوليک تحقيقي اثر

۶- ژوند په شيبو کې تحقيقي اثر

۷-دانارتروني لاندې دتورنتو اوښکې ناول ژباړه

---